# د اتمان خېل قبيلې لنډه پېژندګلو





سکالر: نګران:

طارق حسين ډاکټر مظهر احمد

پښتو او د شرقي ژبو څانګه ملاکنډ پوهنتون


سيشن ۲۰۲۲-۲۰۲۴

**اتمان خیل د پښتون قام یوه لویه قبیله ده. اتمان خیل هم لکه د نورو پښتنو تورزن، پیاوړي ، توریالي او خواري کښ خلک دي. اتمان خیل زیاتر د دنګو دنګو غرونو په لمنو کښې میشت دي دې سره سره په سمیزو سیمو کښې هم د اتمان خیلو لویه شمیره پرته ده. اتمان خیلو ډېر ملي اتلان او نور ډېر د کار خلک پیدا کړي دي او په تاریخ کښې یې ځانته یو غوره مقام موندالای دي.**

**د اتمان خیلو دنګ دنګ قدنونه، خاکي مخونه، هجري ډبې، دودنه دستورونه، ناستې ولاړي، لرغونې لاړې چاري د دوي لهجي، د خیل خانیو نومونه د لرغنتوب او پیاوړتوب علایم لري.بهادر شاه ظفر کاکا خیل په اتمان خیلو د هیرودټس او د فلپ باچا ذوي سکندر د دور د اساکیني Asskenoi, Accacini قیاس کوي ښاغلے بهادر شاه ظفر کاکا خیل صیب پښتا د تاریخ په رڼا کښې لیکي.**

**"د سکندر د حملې په وخت دریمه قبیله د اساکیني په لفظ ضبط ده دا خلک د سکندر د حملي په وخت د تالاش د کڅې نه واخله تر بونیر پوري په ټوله علاقه کښې میشته وو. دا لفظ اساکیني هم په څه نه شکل کښې د اس سره تعلق ساتي یعني څه رنګه چې اوستایي ژبه کښې اس" ته اسپا" وئیلے شي دغه رنګ په سنسکرت کښې اس ته اسوا" وئیلے شي د اسواکا" په نامه په مهابهارت کښې هم ځني قبائیل ذکر دیچې د هند په لري اطرافو کښې د شمال مغربي علاقو کښې استوګن وو امکان لري چې لفظ اسواکا به په مقمي ژبه کښې په اسواکا بدل شوے وي او دغه لفظ (اساکا) به یونیانو د خپلې لهجې مطابق اساکیني کښې ضبط کړے وي"[1]**

**هم دغه لیکوال وړاندي لیکي:**

**"اوس که چیري دا قیاس قابل تسلیم وي چې اسپاسي او ګوري هغه خلک وو چې د شجره نویسو له خوا په یوسفزي او غوریاخیلو یاد شوي دي نو دا اساکیني څوک وو؟ زما قیاس دا هغه خلک دي چې د دوي اخلاف د شجره نویسو له خواه په اتمان خیل، سواتیان، ګدون یا جدون په نومونو ذکر شوي دي د سکندر د زماني چې کوم علاقو کښې ګوري او اساکیني قبایل اباد وو په هغه کښې د سکندر د زماني اسپاسي په هغه کښې د ننی زماني یوسفزي اباد دي"[2]**

**که د کاکاخیل د قیاس په جایز اتفاق ومنل شي نو د اساکیني علاقو کښې اوس هم اتمان خیل اباد دي او د اتمان خیلو په اویو دولس یا اته خیل خانیو " کوم چې د اتمان بابا؟ اولاد نومیږي"**

**کښې ګوري لویه خیل خانه ده چې لاندي ډېرې څانګي لري او پنجکوړي ته سیلمه د دیر په پوله لوي جایداد لري. داسې د اتمان خیلو څانګي "د اتمان بابا؟ اولاد " نومونه هم د لرغونتیا علایم لري لکه ماندل ـMandal ، شموذي ، Shamozi، علیزي ـ ALizi، متکي ـMatakki ـ ، پیغوذي یا پیغزي ـpeghozi ، اصیل ـ Asil ، بیمري ـ Bimariـ بټکور یا بټ خیلButkor ـ ګوري ـGwari ــ ، سانیزي یا سنیزي ـ Sanezi ټاکورTakwar ـ استاندار ــ Asatanadar ـ سمیل زي یا اسماعیلزي چې پکښې ټاکور او منـــدن هـــم راځـــي. مســـټر هنـــري والټـــر بیلـــو پـــه خپـــل کتـــاب "an inquiry to the ethnography of afghanistan" کښې لیکي:**

**ژباړه:**

> **" د اشنغر د السوالی د داودزو سره سیلمه د مومندو یوه بله څانګه ده او له هغي په خوا کښې اتمان خیل یا تمان خیل دي دوي د پورته ذکر شوو څخه خواره توپیر لري. دوي د سوات سیند دواړو غاړو ته د کیمور څخه تر خانوړی پوري غونډی نیولي او د رانیزو او مومندو د غرونو په غونډیو کښې موقعیت لري. ویل کیږي چې دوي د غور هیواد څخه راوړل شوي او دلته د یوولسمې پیړۍ په لومړیو کښې د سلطان محمود غزني لخوا د نظامي کالونۍ په توګه ځاي شوي. دوي د هیروډټس د دور د اتاي Utoi نمایندګي کوي"[3]**

**دغه پورته اقتباسات د مذکوره لیکوالانو مخ په وړاندي ډاکټر بشري خاتو په تاریخ صوابی کښې او څه نورو لیکوالانو هم وخت په وخت رانقل کړي. اتمان utman یا تمان Taman لفظ د کومه راغلو؟ او څومره لرغونیا لري؟ د خیل لاحقه کله او څنګه دوي سره ولګیدله؟ دغه ځانله یوه بیله څېړنه او زیار غواړي . ځکه چې د اتمان خیلو څه مشران ځانونه په تمان خیل Tamankhel نوموي او ځنې یې کره بره اتمان خیل utmankhelوائي او هم دغه ډول ځنو تاریخونو کښې په دواړو نامو دوي نومول**

شوي. خوشحال بابا هم د پښتنو خزو د خویو خصلتونو د بیان په اړوند یو شعر کښې وئیلے چې دغه ښاغلي جمیل یوسفزي خپل تصنیف کښې کوډ کړے دې لیکي

"په اړهنګ بړهنګ* کښې هم شته اتمان خیلي د سړیو په جامو جامو

ریمني ارهنګ برنګ د اتمان خیلو د باجوړ سیمه ارنگ اتمان خیلوں ہی کے پاس ہے

آج کل کی تقسیم کے مطابق دریائے سوات کے شمال مغرب میں آتا ہے اور یہ باجوڑ کا علاقہ محسوب ہوتا ہے

درمیان میں دریائے سوات بہتاہے تحصیل اتمان خیل سے بالکل متصل ارنگ برنگ کا علاقہ ہے اس شعر سے واضح

ہوتا ہے کہ 1669 ع کے لگ بگ اتمان خیل ادھر ہی تھے جدھر حال بسر نظر آتے ہیں"[4]

د پښتنو په معلوم تاریخ کښې اتمان خیل کرلاني یاد دي په دغه لړ کښې ښاغلے اولف کیرو "The pathans" کښې لیکي:

"که د کرلانۍ کورنۍ کرښه په زیر سره وګورو نو داسي نتیجه اخلو چې ټولي مشهوري قبیلې په کرلانۍ پوري تړلي دي چې د دولتو بیل شوي او ازاد پاتي شوي دي داو طلب او اجیرو سپاهانو یې تاریخي شهرت تر لاسه کړے دے چې د افغان په نامه یادیدل. ارمړ د دوي په شجره کښې داسې بیان شوي چې توي شوي او د افغانیت ادعا نه لري"[5]

هم دا ښاغلے وړاندي د وزیرستان په بیان کښې لیکي:

"...دوي ټول کرلاني دي او زمونږ د کلاس د مخې دوي افغانان نه بلکښې خالص پښتانه دي داسې یوه کمزوري پخوانۍ کیسه شته چې کرلاني د ترکستان د مینځ نه راغلي دي خو دا تیوري لکه د نورو تیورو پشان د پښتنو د اصل په حقله موجودي ' یوه ضعیفه تیوري ده او اعتبار نه لري. دا چې کرلاني دي او د غرونو خلک دلته کرلاني دي داسې ښایي چې خالص او تر ټولو لرغوني خلک هم دا خلک دي."[6]

دلته نتیجه په دې تمامیږي چې اتمان خیل په کرلان نامه پوري منسوب دي او د غرونو او سمو لرغوني خلک دي. ښاغلے ډاکټر لطیف یاد په خپل کتاب پښتنې قبیلې وپیژنۍ کښې د دودیز او روایتي تاریخ په بنسټ لیکي:

"اتمانخیل دپښتونخوا یوه مشهوره قبیله ده چې د پښتنو په کرلاني ګروپ کښې شامل دي او دوي ته ددوي دپلار اتمان بابادنوم په وجه اتمانخیل وایي ۰ اتمانخیل په یوه وا حده سیمه کښې استوګنه لري خو په درې اداري وا حدونو یعنې باجوړ ایجنسۍ، مومند ایجنسۍ او ملکنډ ایجنسۍ پورې اړه لري."[7]

وړاندې لیکي:

"اتمانخیل د څوارلسمې عیسوي پېړۍ په پیل کښې د یوسفزیو قبیلې په ګډون د ټانک او ګومل د غرونو نه غرونو نه دکابل او ننګر هار له لارې پېښور ته لاړل او له هغه ځایه په دوابه او اشنغر کښې د یوسفزیو سره یو ځاي په غم او ښادۍ کښې شریک شول ۰ کله چې د دلازاکو ، یوسفزیو او نورو قبیلو تر مینځ د لنګر کوټ په میره یا ګړي کپوره کښې جګړه پېښه شوه ،نو په دغه وخت کښې دغه قبیله سره له دې چې دلازاک د دوي سره د قبیلوي خپلوۍ له کبله نږدې و د یو سفزیو پر خوا ودریدل او په دې توګه یې دلازاکو ته ماتې ورکړه ،خو یو سفزیو ددوي سره کشو مشه ښېګڼه و نکړه ۰ وروسته اتمانخیل له هغه ځایه تېراه ته ولېږدېدل او کله یې چې له هغه ځایه هم لاسونه لنډ شول نو بیا د اړنګ برنګ سېمې ته لاړل چې لا تر او سه هم په همدې سېمې کښې مېشته دي ۰ د اتمانخیلو سېمه په عمومي ډول غرنۍ ده چې د لویششو او کوچنیو درو نه جوړه شوې ده چې واړه(کوچني) سېندونه یې دسوات په سېند کښې چې په دغه سېمه کښې د ابازو په سېند مشهور دي توئېږي ۰ ددوي د سېمې شمال ته د باجوړ سېند بهېږي چې تر کلانې او اتمانخیل سره جلاکوي ۰ داتمانخیلو هغه سېمه چې په ملکنډ ایجنسۍ پورې اړه لري د سوات د سیند له خوا خړوبېږي ۰ ............ د اتمان خیلو مشهور کلي ، خرکي، میاه خان، سنګاو، پیپل، کوهې برمول دي"[8]

د ډاکټر لطیف یاد صیب لیک لکه چې وړاندي ووئیل شو په دودیز تاریخ او ابتدائې معلوماتو پوري اړه لري، بشپړه څېړنه نه ده.د اتمان خیلو په لړ کښې کره ، سمه، او واضحه څېړنه نه ده شوي. دغه د باجوړ، مومند، او ملاکنډ پورې خوره وره جغرافیه معلومېږې چې د اتمان خیلو بنیادي ټاټوبے دے. خو اتمان خیل د دغه نه پرته په افغانستان کښې په ګڼ شمیر ولایتونو کښې اباد دي یواځې د کابل فرزې اولسوالي کښې اتیا سلنه اتمان خیل اباد دي۔

**دغه فرزي اولسوالي ته د مروري السوالي څخه دغه خلک کوچيدلي هم دغسي بغلان قله ګی اولسوالي کښې يولس سوه کوره د دوي شمير شته د دغه نه پرته پروان، ننګرهار او شاوخوا اتلس ولايتونو کښې اتمان خيلو لوي تعداد ځاي په ځاي شتون لري. دافغانستان نه علاوه د هندوستان په رام پور، بهار، لديانه، حيدراباد، کلکته او نورو ځايونو کښې هم د اتمان خيلو شتون لکه د نورو پښتنو شته په دغه اړه سيال مومند د پښتنو قبيلو شجري کښې ليکي.**

"په ۱۹۴۰ع کښ بهار ـ بنګال کښ د دريو لکهو نه ډير پښتانه اوسيدل چې د هغوی اهم مرکزونه پټنه ، بردوان ، او ډهاکه ؤ او په کلکته کښ شاوخوا پنځلس زره پښتانه استوګن ؤ په کلکته کښ دغه پښتانه يوسفزي، اتمان خيل او پني ؤ"[9]

**اوريجن اينډ هسټري آف انډس 900 BC to 1947 د لديانه ضلعي په بيان کښې ليکي.**

Ludiana District The following pathans tribes are represented in this district; balozai, tarban, barakzai, daudzai, gilzai , Gori, Tamankhel, yusafzai, ,janzai. Besides their own woman the will marry among chohan, mujis and behues but will not give their daughters in marriage to them. Pathans numbers are 3939 they are mostly refuges from kabul living in ludiana town but an anciaent colony of them hold land in bahwalpur.

**ژباړه:**

"دې ضلعه کښې لاندينی پښتني قبيلي ژوند کوي بلوزی، ترين، بارک زي، داود زي، ګوري، اتمان خيل، يوسف زي، جت ري. دا خلک د خپلو په نسبت په چوهانو، مجوسيانو او بيوو کښې ودونه کوي. ليکن ولي خپلي لوڼه دوي ته نه نکاح کوي د پښتنو تعداد ۳۹۳۹ پوري دي دوي اکثريت د کابل څخه کوچيدلي ليکن د دوي لرغوني کالونی د بهاولپور زمکي دي."[10]

**د دغه نه علاوه کوزې پښتونخوا په ډېرو ولايتونو کښې د اتمان خيلو لويه شميره شته يواځې د کوز دير اولسوالي کښې شاو خوا څلويښت سلنه نه زيات اتمان خيل شته**

**داسي بر دير، سوات، مردان، اشنغر، صوابۍ، پیښور ، ضلع اورکزی او ضلع لور لاېږ بلوچستان پوري خواره واره په زرونو تعداد کښې شته. دغه ټولو احاطه کول دې محدود ليک کښې يو څه مشکل کار دي دغه کښې د څه په حقله به ليک مخ په وړاندي بوځو لکه د صوابۍ د اتمان خيلو په حقله ښاغلے جميل يوسفزے صيب ليکي:**

*"اب اتمان خیل مندڑ اتمان خیل مندڑ نامے کا حصہ بن گئے ہیں. ضلع صوابیؑ کے تحصیل رزڑ میں اتمان خیل ملکیتی رقبہ رکھتے ہیں معلم نہیں کہ تحصیل رزڑ کے اتمان خیل کسي واقعے کے نتیجے میں آئے ہیں. اولاد رزڑ کے ساتھ تقسیم میں سبب رشتہ داري، محال، نورا خیل کا حصہ بنے صوابیؑ میں اتمان خیل تپہ اتمان صوابیؑ سے کہیں بڑھ کر ہیں."* [11]

**هم په دغه ډول د مردان د اتمان خيلو په اړوند تحقيق د لوي زيار متقاضي دي لکه چې د مخه ووئيل شو د اتمان خيلو لويه ابادي په خرکي، مياه خان، سنګاو، پيپل، کوهي برمول کښې او ورسره نورو سيمو کښې پرته ده. دغه پراخه سيمه ده او لويه رقبه لري اتمان خيل په کښې د ملکيت په حساب د شيخ ملي د ويش نه وړاندي اباد دي. دغه سيمه د کاڼي دوري نه واخله تر دې دمه لوي تاريخ لري د خوشحال خان خټک په دغه سيمه کښې قيام هم کړي وو شعرونه يې ليکلي او دغه کښې يې د دغه سيمي يادونه هم کړي لکه چې ليکي:**

**زما ژبه نه ده اور ده**
**ګذارونه د ټوپک کا**

**خوشحال ناست په برمول دي**
**ارمانونه د اټک کا** [12]

**هم دغه شان دغه مشهوره قصيده د برمول په مقام خپل قيام دوران کښې ۱۰۸۶ کښې ليکلي وه اخيرې شعر کښې د برمول يادونه کړي.**

بیـــا لـــه کـــومې راپیـــدا شـــو دا بهـــار
چـــې وطـــن د پښـــتنو یـــې کړلـــو ګلـــزار

د دریمـــــې خـــــور اول کـــــال د عفـــــو وو
مـــا چـــې ووې برمـــول کښـــې دا اشـــعار"[13]

هم په دغه اړه ښاغلی جمیل یوسفزی د اتمان خیل د بیان په لړ کښې په خپل کتاب "مملکت یوسفزئ کے قبائل" کې لیکي

"دراصل ان دووادیوں کے شمال میں دریائے سوات دشوار گزار گھاٹیوں میں سے بہتاہے. جبکہ جنوب مشرق سے بھي اس وادي میں بھي اس وادي کو مسخر کرنا مشکل تھا. اکبري یلغاریں ان وادیوں کي چھٹانوں سے ٹکرا کر پسپا ہوئي تھیں. ناقابل تسخیر ہونے کي وجہ سے یہ وادیاں ہمیشہ ان مخالف لوگوں کیلئے پناہ گاہیں رہي تھي. یہي حال کا ٹلنگ کے اتمان خیـ ملوں کا بھي تھا. خوشحال خان خٹک کے قید وبند کے زمانے میں ان کا گھرانہ موضع "سنگاو" میں پناہ لینے پر مجبور ہو گیا تھا خود خوشحال خان برمول (اتمان خیل) میں کئي ماہ قیام پذیر رہا تھا یہ واقعات 1669 ع سے پہلے کے ہے. پھر خوشحال خان خٹک کا قیام 1669 ع میں دورہ سوات کے دوران اس علاقے میں رہا. اوربقول رحیم شاہ رحیم خوشحال خان اور میاں ملانور کا مشہور مناظرہ اتمان خیل کے موضوع پیپل ہي میں ہوا تھا

دغـــه کلـــے کـــه پیپـــل نـــه لا بـــل وي
بیـــا ممکنـــه ده چـــې کلـــے د پیپـــل وي"

ژباړه:

"په حقیقت کښې د دې دوو وادیانو شمال ته د سوات سیند له سختو کنډو څخه تیریږي، په داسې حال کښې چې له جنوب ختیځ څخه د دې درو فتح کول هم ستونزمن وو، د اکبر باچا حملې هم دې غرونو څخه د ټکر په نتیجه کښې تمبیدلې. د ناممکن تسخیر له وجې دا درې تل د دې دښمنانو مخالفو لپاره د پناه ځایونه وو. دغه حال د کاټلنګ د اتمان خیلو هم وو. د خوشحال خان خټک د بند په موده کښې د هغه کورنۍ د سنګاو په کلي کښې پنا اخیستو ته اړ شوه، خوشحال خان پخپله په برمول (اتمان خیلو) کښې څو میاشتې پاتې شو. دا پیښې د 1669 نه مخکښې شوي دي. خوشحال خان خټک په 1669 کښې سوات ته د سفر پر مهال په دې سیمه کښې پاتې

شو، د رحیم شاه په وینا، رحیم خوشحال خان او میا ملا نور مشهوره منظره هم دې د اتمان خېلو په ځاي پیپل" کښې شوي وه دغه کلے که پیپل نه وي لا بل وي بیا ممکنه ده چې کلے د پیپل وي."[14]

فرنګي دوره کښې هم دغه کلي تاریخ کښې ژوندي پاتي شوي او د استعمار خلاف یي لوي مزاحمت کړي فرنګیانو ۱۸۶۹، ۱۸۶۶ کښې په دغه سیمو بریدونه کړي وو په ۱۸۶۶ کښې دغه کلي په هتیانو نړولې او سیزلي وو چې ورستیو بیا اباد شو. هم په دغه ډول د لورلاي اتمان خیل چې لوي تاریخي حیثیت لري په کاکړو کښې یي ګڼون شوے حال دا دي چې دغه کرلاني دي او په دغه اولسوالي کښې اویا سلنه اباد دي. د لورلائي ارسلا خان اتمان خیل د ازادۍ لوي مبارز پاتي شوي دي. هم دغه شان د ضلع اورکزئ اتمان خیل چې د تاریخ په اوږدو کښې یي فعال او متحرک کردار لوبولے دي او خپل تاریخ یي د فرنګي دوري پوري ژوندي ساتلے د فرنګو خلاف د دوي مزاحمتونه خپله د فرنګو په کتابونو، ملېټري رپورټونو او ټیلي ګرافو کښې محفوظ دي. دغه خلک د باجوړ اتمان خیلو سره نسلي تعلق لري په اورکزو کښې میشت دي د افضل خان خټک، تاریخ مرصع د مخه اتمان خیل تیراه کښې دغه وخت اباد وو چې د پیر روښان دوره کښې د یو څه حالاتو او وجوهاتو له وجي یې تیرا پریخوه او دې سیمو ته راغلل خو ولې اوس هم اورکزو کښې اتمان خیل په ټانډا، باندا او نورو سیمو کښې په لویه کچه اباد دي. دغه مذکور د اورکزو او لورلایي اتمان خیل د دیر ، باجوړ، ملاکنډ د اتمان خیلو تنظیمي غونډو کښې ګډون کوي او د نسلي ربط تسلسل ژوندے ساتي۔

هم دغه ډول دیر په اتمان خیلو شته مند دے خو دیر ته د اتمان خیلو راتګ کله؟ او څنګ راغلي؟ د تاریخ په څپو نه دي خوندي کړي شوي او چې کوم تاریخونه د دیر په حقله لیکل شوي د اتمان خیلو په اړوند ضعیف او کمزوري نظر لري د دې وجوهات دا کښېدے شي چې اتمان خیل 'خانان نه لري او دیر د خانۍ په ولقه کښې مزل کړي دویم د اتمان خیلو او یوسفزو قبائیلي اتحاد تیر شوي دغه وجه هم د راتګ کیدي شي او یو څه شمیر دې پله کوچیدلي وي دریم د "خیل" لاحقه د اتمان یا تمان

سره لګیدلي نو د تاریخ نه نابلده یې د قبیلې پر ځاي یوه وړه خیل خانه ګڼي او د تاریخي چوکاټه یې بهر ساتلي . حال دا دي چې بیلا بیل ښاخونه اباد دي دیر کښې روغ روغ کلي د اتمان خیلو اباد دي یواځې تحصیل بانډګۍ تالاش کښې لس اتیا سلنه اتمان خیل دي د فرنګي دوره کښې ۱۸۹۵ شاوخوا د هغوي په ملیټري رپورټونو کښې د اتمان خیلو دیر کښې شتون په اړوند سرسري او محدود معلومات شته د بیلګي په توګه زما د نیکنۍ کلي په حقله ۱۹۰۶ یو ریپورټ کښې لیک دي.

> MANUGAI An utman khel village of 12 houses near the hamlet of mali and markhani on the hill to the north coast of rabat near the mouth of the valley some: 10 Acres are Terraced on hill side 60 Cattle and 120 sheep and goats. The hill is doted with fire trees. Grazing good and plentful: the malak in 1895 named nurbaz( burton).[15]

ژباړه:

د اتمان خیلو د دولسو کورونو کلي د رباط شمال اړخ نه د غونډۍ په لمنو کښې د مالۍ او مرخنۍ په غاړه غرونو ته نزدي اباد دي شاوخوا لس جریبه زمکه لري او غرونـــــه یــــــي د دیــــــار د ونــــــو ډک دي. ۶۰ څـــــاروي/ غواګــــــاني او ۱۲۰ وانښـــه ګیــــاه پـــه کښـــې ډېـــره ده ملـــک ۱۸۹۵ کښـــې نوربـــاز وو. (بـــرټن) د دې پرته نور مثالونه په تیمرګره کښې مدفون ماندل طالبیګ کور سره نسلي تعلق لرونکي شیخ عبدالرحیم بابا تور بابا" چې نن سبا یې پوره شیخانو دره اولاد کښې راځې او د ده ورور د مورنۍ شیخ عنایت الله " تور بابا" او تالاش بانډګۍ کښې مدفون شیخ حمیدالله تور بابا، او ظلم کښې مدفون توربابا چې د شیخ عبدالرفیق په نوم یادیدلو په شکل کښې شته دغه کلهم شیخان نومیږي چې د پنځم ورور شیخ اداد توربابا کوم چې قـذافي ګـردۍ کښـې مـدفون دي د شـیخ محمـد توربابـا پـه اولاد کښـې راځـې. د دیر سره لګیدلو سنګرونو د کیمور په لمنو کښې پراته د باجوړ اتمان خیل هم لویه شمیره او رقبه لري. د باجوړ اتمان خیل د رود " سیند" نه دیخوا او څه کلي لکه

سـکندرو، قزافـي، دواوو او نـور... د رود نـه اخـوا دواړو غـاړو تـه ابـاد دي. ښاغلی انور نګار په خپل تصنيف تراشلي ټکي" کښې د انتظامي د سرخط لاندي ليکي.

"په باجوړ ، مومند او ملاکنډ منطقه کښې پراته دي خو غير منطقي انتظامي وېش له امله د سرکار له اړخه د ورکړي شوو اسانتياو نه ګټه نشي پورته کولی. د مثال په توګه عليزی سيمه د ښار تحصيل برخه ګرځولي شوي ده چرته چې د باڅره خانانو او سرمايه داري طبقې مخې ته د وړو بوټو پشان د غټو ونو د لاندي مخ په پورته نه شي تللی هم دا رنګه د ماندل سيمه او بر ترخ سيمي په غير منطقي ډول د سلارزی په تحصيل کښې ورګډ کړي شوي دي چې په نتيجه کښې يې استحصال رسيدالای دے د برنګ سيمه د ډويژن په لحاظ د ناواګی د ډويژن برخه ده چيرته چې د دوي د هغه ځاي د خانانو ملکانو نه خپل حق نه شي تر لاسه کوالای. د دې ناروا وېش نتيجه ده چې د باجوړ په شپږو کالجونو کښې د اتمان خيلو په خاوره يو کالج هم جوړ نه دے دغه حالات د لارو، روغتونونو او نورو اسانتياو هم دي."[16]

هم دا ښاغلی د سياسي وېش د سر خط لاندي ليکي:

"د بده مرغه په ټوله اتمان خيل منطقه کښې عموما او خصوصا په باجوړ کښې سياسي وېش د دوي د پرمختګ په لار کښې غټ خنډ دے د ټاکنو د کميشن د زور وېش تر مخه اين اي ۴۴ حلقه کښې د سلارزی سره اتمان خيل تړل شوي چې سياسي وحدت يې تار تار دي د کميشن د نوو ټاکنو حلقه بندی تر مخه دا سياسي وېش يو بل تاريخي ظلم شوي دے چې باجوړ ته د دريمې حلقي ورکولو باوجود اتمان خيلو ته د هغوي جغرافيائې او شمېر په رڼا کښې ځانله سيټ ور نه کړي شو بلکښې د دوي د باجوړ په دريو بيل بيل حلقو کښې وېشل شو."[17]

څنګه چې ښاغلي نګار صيب کومه نکتې په ګوته کړي دغه قيصه د اتمان خيلو سره په هر ځاي کښې شوي نو هم دغه خلکو چې لږ لاس غوړ شوي د خپلو سيمو نه په هجرت مجبور شوي او سره د لوي تعداد او جغرافايې اوس هم په لويه غريبه قبيله ياديږې.

د باجوړ اتمان خيلو د بابر د وخت نه واخله تر سکھ فرنګ دوري پوري د ټولو استعماري قوتونو خلاف مېړانه ښکاره کړي او د خپل وطن دفاع يې کړي د فرنګو سره د

دوي نخښتې د تاريخ غوره بابونه دي. کله چې فرنګو په دې خاوره مقاومت وکړ د باجوړ اتمان خيلو کلکه دفاع وکړه د دوي د ناوې ډنډ، ګجرو ګهړۍ، چارسدي، پړانګ غار او ميچنۍ غزاګانو کښې شرکت تاريخ خوندي ساتلي دي کله ې د کجورۍ، برنګ ، ارنګ نارنج په سيمو د فرنګ له خوا هوايې ځواکونو د جهازونو څخه بمباري وکړه نو دغه چاربيته منظر ته راغله:

جازونه راله لس

ګولۍ ولې په خړس

هغه سړي نر دي

چې ځان بچ کړي

کور په کور

نارنج يې کړو نسکور

دغه پيښې د کال ۱۹۳۰-۱۹۳۹ دي دغه فرنګو په خپل ريپورټ The Royal Airforce 'An ancyclopdia of the inter war year 1930-1939 " کښې په دې ډول ليکلي:

"The bombing raid on the 17th August were carried out against the villages in Arang Valley in utmankhel country. This time Flying officer Wheeler Returend from the raid with engine trouble [the squadron had wapitis for little more than one year"[18]

ژباړه "

د اګست په ۱۷مه د هيواد په اتمانخيلو کښې د ارګ په دره کښې په کليو بمباري ترسره شوه. دا ځل د فلاينګ افسر ويلر د انجن د ستونزو سره د بريد څخه بيرته راستون شو [ سکواډرن د يو کال څخه لږ څه ډير وپيټس درلود.

باجوړ یو اهم جنګي مرکز پاتي شوي یواځې کاکاجي صنوبر حسین مومند د اتمان خیلو په سوال قلعه کښې د ملک محمد عمر سره اتلس کلونه تیر کړي وو او د دې ځائے نه به د فرنګو خلاف وسله والي مبارزي کیدلي سبهاش چندر بوس هم دې ځائے ته تګ کړي وو چې بیا د دې نه افغانستان ته ولیږل شو. عمراخان جندولي چې کله د جندول نه شړونکي شو نو هم د متکي اتمان خیلو سره یې پناه اخستلي وه په دغه حقله ډاکټر خالق زیار دا خاوره دا خلک کښې لیکي:

"دلته باید باجوړ د حالاتو ذکر وشي ځکه چې د فیض طلب خان ځوک چې په امبیله کښې زمونږ خلاف جنګیدلے وو دغسې عمراخان هم په دې دور کښې منظر ته راغې دې د امان خان دویم ذوې وو او محمد زمان خان د ده مشر ورور وو ځوک چې د پلار د مرګ نه پس د باړورې خان جوړ شو عمراخان د خپل ورور محمد شاه خان سره یو ځاي چې کله د مشر ورور د لاسه د جندول نه شړونکي شو نو د متکي اتمان خیلو سره یې پناه واخستله هغه دغه وخت درویشت کلن وو"[19]

داسې ویل کیږي چې د عمراخان مور اتمان خیله وه نو هم په دغه وجه ورته پناه ورکړي شوي وه. هم داسي سرتور فقیر، هډې ملا، مانکي پیر ، علینګار فقیر او نورو مذهبي خلکو دلته پناه اخستلي او مبارزي کړي دي. باجوړ اتمان خیلو خدائې خدمت تحریک هم ژوندي ساتلي باچا خان د اګري په لار دلته وفدونه لیګلي دې خاورې د پښتون وطن په هره موقعه مرسته کړي. باجوړ اتمان خیلو د شالم بابا شموذی، شیهشن بابا استاندار، میاه عمر بابا، ملک محمد عمر شموذی، میا شاجهان شهید شموذی، ملک نورمحمد خان، اخوند صوفي عبدالرحمان باجوړے شموذی سرکاني خیل، مولانا عبدالمجید افغاني علیزی اتمان خیل ، غازي میردل خان شهید برنګ اتمان خیل او نور د کار خلک پیدا کړي دي. هم دغه ډول د ملاکنډ سیمې اتمان خیلو د فرنګو په خلاف یو شمیر غزاګاني کړي دي د ورتیر، بړه، کوټ ، ټوټی، ورتیر، هریانکوټ، اګره ، سمه رانیزی او نورو اتمان خیلو خپل تاریخ روښانه ساتلے دے. دا تاریخي سیمې دي-

ښاغلي جمیل یوسفزے په خپل کتاب "مملکت یوسفزی کے قبائل" کښې لیکي:

"اتمان خیل کا جکاؤ منڈڑ نامہ کي طرف زیادہ تھا. تحریک روشنائیہ مندڑ نامہ میں زیادہ مقبول تھي. اس اتمان خیل قبائل نے بھي اس تحریک کو خوش آمدید کہا تھا. بایزید انصاري خود ٹوٹئ اتمان خیل گیا تھا. جلال الدین عرف جلالہ مندڑنامے کے موقع غلاماں میں چند عرصہ مقیم رہا۔یہاں وہ اپنے کھوئے ہوئے ساتھیوں کو اکھٹا کر کے ٹوٹئ روانہ ہوا گویاٹوٹئ اس کي دوسري پناہ گاہ تھي یہ واقعات ۱۵۶۹ کے ہیں"[20]

ژباړه:

**د اتمان خیلو لیوالتیا د مندړ نامې پله زیاته وه. تحریک روشنائي په مندړ نامه کښې زیات مقبول وو. په دغه اتمان خیلو هم دغه تحریک ته هرکلے وئیلے وو جلال الدین عرف جلاله مندړنامه موقع غلاماں کښې څه ورځې مقیم وو دلته نه هغه خپل ورک شوي ملګري یو کړل او ټوټۍ ته روان شو ګویا ټوټۍ د دوي دویم د پناه ځائے وه -**

**هم دغه سیمو ته شیخ خلیل ګل عرف زمرے بابا د کاکاخیلو نفوذ په وخت کښې کوچ کړے وو ښاغلے سید سیاح الدین کاکاخیل د شیخ رحم کار تذکره کښې لیکي**

"شیخ خلیل گل بمعروف از مرے بابا آپ شیخ رحیم کار ہی کی حیات میں اس علاقہ اس علاقہ ٹوٹئ علاقہ اتمان خیل (یاغستان) کي طرف تشریف لے گئے تھے"[21]

**دې ځاي اتمان خیلو یوه غزا کښې د ملاکنډ پولیټیکل ایجنټ "لیزلے ویلئیم بیسټ عرف ډینګ فرنګے هم وژلے وو په دغه حقله ښاغلے امجد علي اتمان خیل د**

Leslie William Hazlitt Duncan Best, O.B.E M.C who was killed in action at Malakand Agency. Best (1896-1935) was a private secretary in Indian Civil Service. Recipient of "Order of the British Empire" and "Military Cross".

**د معلوماتو په بنیاد د دغه فرینګي د قبر کوم چې ګورا قبرستان کښې دے او نورو معلوماتو په حقله لیکي:**

"ایک قبر ایک کہاني.. یہ قبر گورا قبرستان تہکال پشاور میں ملاکنڈ ایجنسي کے پولٹیکل ایجنٹ میجر لیزلے ولئیم ہزلٹ ڈنکن بیسٹ کي ہے. جسے آگرہ گاؤں ملاکنڈ ایجنسي میں قبیلہ اُتمانخیل کي ذیلي شاخ شموزئي کے خلاف مُہم جوئي کے دوران اپني جان سے ہاتھ دُھونے پڑے.

---۔ مسٹر لیل۔ڈبلیو۔ایچ۔ڈي بیسٹ Mr L.W.H.D.Best (Leslie William Hazlet Duncan Best) انڈین سول سروسز ICS سے تھے اور 07۔11۔1933 سے 11۔04۔1935 تک ( اپنے موت کے دن تک ) مالاکنڈ ایجنسي کے پولٹیکل ایجنٹ رہے ہیں۔ موت سے 10 دن پہلے اُس وقت کے ولي عہد ریاست سوات مرحوم و مغفور جہانزیب کو اپنے ساتھ پشاور سے لے کر سوات آرہے تھے کہ راستے میں دَرگئ کے اُس پار فقیر النگر اور فورسز کے درمیان لڑائي کي خبر ملي۔ مسٹر بیسٹ نے (یکم اپریل 1935) جہانزیب کو اپنے اسسٹنٹ کے ساتھ کیا اور کہا کہ ان کو سوات تک پہنچائیں اور خود فقیر النگر کے خلاف لڑائي میں حِصہ لینے آگرہ چلے گئے جہاں اُن کو حادثاتي طور پر مارا گیا۔

یاد رہے کہ مسٹر بیسٹ سابقہ چیف کمیشنر (1925) سر نارمن بولٹن کے داماد تھے۔ نارمن بولٹن کی اکلوتی بیٹی تھی۔"[22]

**لنډه دا چې د ملاکنډ اتمان خیلو لکه د نورو پښتنو د وطن په خاوره ننګ کړي دي خاورې اتمان خیلو کښې د عبدالطیف آفندي او رحمت شاه سایل غوندي خلک پیدا کړي دا خاوره د تاریخ له رویه غني ده.**

**د ملاکنډ او باجوړ سره پیوست مومند ضلع کښې تحصیل امبار اتمان خیل او تحصیل پړانګ غار اتمان خیل هم د اتمان خیلو سیمه ده چې په کښې بټ خیل یا بټکور اتمان خیل او زیرک اتمان خیلو نه علاوه نور ښاخونه ژوند کوي دغه سیمې ته لمن یا دامان اتمان خیل وائې د میک میهن او ریمزي رپورټ دیر سوات او باجوړ بشمول اتمان خیل او سمه رانیزی" ژباړن ډاکټر خالق زیار "دا خاوره دا خلک" کښې په دغه اړوند لیکي:**

**"د اتمان خیلو د علاقې یوه وړه برخه د پېښور د ضلعې د انتظام لاندې ده. د دې برخې مشرق ته ټوټې شمال اړخ ته یې تر بازارکي پورې د سوات سیند جنوبي لوړه (Water Shed) د بازارکي نه ښکته مغرب خواته یې د سوات سیند بهیږي د دې سیمې خلکو ته لمن یا دامان اتمان خیل وائې په دې علاقو کښې د میشته کیدو نه وړاندې دې خلکو د لوند خوړ شاوخوا علاقې نیولې وه کومه چې اوس د پېښور په ضلع کښې شامله ده."[23]**

لنډه دا چې د پړانګ غار او امبار او ورسره په مومند ضلع کښې اباد اتمان خیل محنتي او تاریخي خلک دي د پړانګ غار غزاګاني، د اشنغر غزاګاني، ابازو، د میچنۍ او ناوې ډنډ په غزاګانو عبدالحلیم اثر افغاني په خپل تصنیف "زمونږ مجاهدین" کښې او محمد شفي صابر په تاریخ صوبه سرحد کښې او ورسره نورو په تفصیل سره نقل کړي دي او داسي معلومیږې چې اثر افغاني دغه معلومات د بیلابیل د فرنګو ریپورټونو، ټیلي ګرافو او نورو ریکارډونو نه رانقل کړي دي دلته تفصیلات د دې لیک تنګ چوکاټ کښې نقل کول ناممکن دي. سید احمد بریلوي یوه میاشت هم دغه پناه کښې د ملک لعل محمد پړانګ غاري سره تیره کړي وه .هم د دغه سیمو د امبار ګمبتۍ اتمان خیل ملک میر باز او ملک حکیم خان د اتمان خیلو سر لښکر ؤ او په کال ۱۹۰۶ کښ ئې په شبقدر کښ په فرنګو بریدونه کړي ؤ. هم دغسې مکرم خان ، ملک حاجي وصلي خان اتمان خیل، ملک میمون خان اتمان خیل او نور.. د دغه ځاي نامتو خلک تیر شوي دي. د دې ځائې خاوره تر نورو اتمان خیلو سیمو د کر کروندې په لحاظ شتمنه ده. په مجموعي ډول د اتمان خیلو د دغه ذکر شوي سیمو د معدنیاتو نه ډکي دي یواځې د برنګ د کرومایټ، نیپرائټ او ماربلو کانونه د ذکر وړ دي هم دغسې په دغه ذکر شوي سیمو کښې لرغوني اثار په لوي مقدار کښې موندلے شي په خصوصي توګه د کیمور لمنې او د خرکي، میاخان، سنګاو، پیپل، برمول او کوهي غرونه د دغه اثارو ډک دي. اتمان خیل فیور ډیموکریټیک خلک پاتي شوي دي دوي کښې خانان، نوابان نشته او هم د دیر، سوات، او باجوړ د خانانو، نوابونه د اغیز او اثر نه ازاد پاتي شوي دي. په دغه حقله ډاکټر خالق زیار دا خاوره دا خلک " کښې د حکومت نظام-د قبیلوې او عامو خلکو سره مربوط" د سرخط لاندي لیکي:

"په لومړي نظر کښې سړي ته دا حقیقت واضح شي چې په دې علاقه کښې د اقتدار څو منفرد شکلونه وجود لري چې د یو بل نه. نه یواځې دا چې د قبیلو په سویه توپیر لري بلکښې د قبیلي په بیلابیلو برخو کښې هم فرق لري. د دیر خان د ناوګۍ خان حکمرانۍ شکل د بادشاهۍ او یا حتي مطلق العنانیت (autocracy) ته ورته ښکاري. د دیر او باجوړ د وړو خانانو د حکمرانۍ شکل د اشرافي نظام نمونې وړاندي کوي. په داسي حال کښې چې په ټول اتمان خیل کښې او د سوات په لویه برخه او زیاتره باجوړ کښې

سپيڅلے جمهوريت موجود دے .بيا هم د ژورې مطالعې په نتيجه کښې سړے دې حقيقت ته رسي"چې دا توپيرونه خو هسې په ظاهري ډول ډېر ښکاري ولې په حقيقت کښې داسې نه دي همدغه د خلکو د خلکو سره مربوط جمهوري نظام په دې علاقه کښې موجود دے او په حقيقي شکل کښې دے ولې بيا وربانديې لږ غونډي اثر د ذکر شوو څو کسانو د حکومت (oligracy) په مختليفو شکلونو کښې موجود دے"[24]

ورانديې په ليکي:

"د سوات بنيادي (اساسي) خانان په حقيقت کښې د بااثره ملکانو نه څه لږ لوړ مقام لري او ذاتي حيثيت يې د هغه اثر نه زيات نه وي کوم چې دوي ته د خپلې ډلې جرګے ورکوي. د تاڼې د خانخيلو جرګه په آئيني ډول ډېر په کوټلي شکل کښې د حکومت ډله ايز نظام پيش کوي. کوم چې دوي ته د خپلې ډلې جرګه ورکوي نو داسې وئيلے شو چې په سوات کښې يو پاک جمهوري شکل موجود دے. هم دغه حال د سمه رانيزۍ او اتمانخيلو دے "[25]

چونکه د اتمان خيلو منطقه يا وطن د لوړو غرونو او لوڅو ځوکو په لمنو کښې جدا دي نو هم دغه لامل وو چې د دغه خلکو اغيز او اثر د دوي څخه لري پاتي شوي او لکه څنګه چې ذکر شوي څه لږ غونډې خلکو پوري په شخصي يا کورينۍ شکل کښې د دغه خلکو اثر پاتي شوي د باجوړ ښار نواب ناوګۍ خانان تر دې وخته د باجوړ رود يا سيند نه ديخوا اتمان خيلو منطقه کښې غرض نه دے لرلے ځکه چې د اتمان خيلو خپلمځنۍ دښمنۍ هم ډېرې خطرناکښې او د پېړو پېړو پوري وي داسې دښمنۍ هم دوي خپلو کښې لرلې چې تر سلو کلونو نه هم زياته زمانه يې نيولي په دې حقله هم دغه ريپورټ "دا خاوره دا خلک کښې ليک دي."د اتمان خيلو خلک د دير، سوات او باحوړ د خلکو په نسبت د بدل اخستلو په سلسله کښې زيات سخت دي او دښمنۍ يې ډېرې خطرناکښې وي"[26]

هم دغه خبرې ښاغلي عبدالحئ کاکړ د کال ۲۰۰۸ بي بي سي رپورټ "موجوده آپریشن میں باجوڑ اہم کیوں؟"کښې کوي د دغه رپيورټ څه حصه دلته نقل کوو:

"نولاکھ کی آبادي کے حامل باجوڑ ایجنسي میں دو بڑی اقوام رہتي ہیں جن میں سے ایک کو ترکھانی جبکہ دوسرے کو اتمان خیل کہا جاتا ہے ترکھانی قوم باجوڑ کي سات میں سے پانچ تحصیلوں ماموند، چمرکند، چہارمنگ، سالارزئی اور ناوگئی میں آباد ہے جسکی کی کُل آبادي ایک اندازے کے مطابق پانچ لاکھ سے زائد بنتي ہے۔ طالبان کے زیادہ تر رہنماؤں اور کمانڈروں، جیسے کہ تحریک طالبان کے نائب امیر مولانافقیر محمد، ترجمان مولوی عمر، ان کي قائم کردہ 'شرعی عدالتوں' کے سربراہ مفتی بشیر اور جیش اسلامی نامی تنظیم کے سربراہ ولی الرحمن، کا تعلق تحصیل ماموند سے بتایا جاتا ہے۔

ترکھانی قوم میں عسکریت پسندی کي بڑی وجہ ان کي سرحدوں کا افغانستان کے ساتھ متصل ہونا بتایا جاتا ہے جہاں پر گزشتہ اڑتیس سال سے جنگ جاري ہے جبکہ اسکے مقابلے میں دو تحصیلوں اتمانخیل اور تحصیل برنگ میں آباد اتمان خیل قوم آبادی تقریباً تین لاکھ سے زائد بنتی ہے۔ اس کی سرحدیں صوبہ سرحد کے ملاکنڈ اور ضلع دیر سے لگتی ہیں اور وہ ترکھانی قوم کے مقابلے میں افغانستان میں جاری جنگ کي تپش سے قدرے دور ہیں۔

خان اور ملک سسٹم کی مضبوطی ترکھانی قوم میں بڑھتی ہوئی شدت پسندی کی دوسري ممکنہ وجہ بتائی جاتی ہے۔ مقامی لوگوں کا کہنا ہے کہ یہاں کے خانوں اور ملکوں نے اپنی طاقت کو برقرار رکھنے کے لیے ماضی میں ایسے ہتھکنڈوں سے کام لیا ہے جسکي وجہ سے وہاں پر ایک کُچلا ہوا طبقہ سامنے آیا جنھوں نے طالبان کي شکل میں ان مشران اور ملکوں کے خلاف ایسي کارروائیاں کی کہ انکی طاقت کمزور ہوگئی اور وہ علاقہ چھوڑنے پر مجبور ہوگئے ۔ جبکہ اتمان خیل قوم میں خان اور ملک اتنے طاقتور نہیں ہیں بلکہ جرگہ ہي مساوی بنیادوں پر قبائلی معاملات چلاتا ہے. باجوڑ ایجنسی آبادی کے لحاظ سے سب سے بڑی اور انفراسٹرکچر کے حوالے سے سب سے ترقی یافتہ سمجھی جاتی ہے -

ایک اور وجہ یہ بتائی جارہی ہے کہ ترکھانی قوم میں قبائلی بدلہ لینے کا تصور اتمانخیل قوم کے مقابلے میں زیادہ مضبوط نہیں ہے۔ جب کبھی کوئی شخص قتل کرتا ہے تو ترکھانی قوم میں قاتل کو عام معافی دینے کا تصور موجود ہے جسکی وجہ سے کسی شخص کو جرم کرنے سے پہلے عام معافی کی امید ہوتی ہے اس لیے وہ اسے کرنے سے نہیں کتراتا۔

جبکہ اتمانخیل قوم کے بارے میں ایک ضرب المثل مشہور ہے کہ ' اتمانخیل قوم سے تعلق رکھنے والے شخص کی لاش قبر کی مٹی بھی ہضم نہیں کرسکتي ہے۔' یعنی چاہے دہائیاں لگ جائیں بدلہ ضرور لیا

جاتا ہے۔ اتمانخیل قوم سے تعلق رکھنے والے ایک اہلکار نے بتایا کہ جب وہ انیس سو ستر میں دسویں کے طالبعلم تھے اس وقت ایک شخص نے قتل کیا اور آج اڑتیس سال بعد بھي درجنوں بار جرگہ لیجانے کے باوجود مقتول کے خاندان کے سربراہ انکار کرتے ہوئے کہتے ہیں 'میں کمزور ہوں اس لیے بدلہ نہیں لے سکا لیکن میں نے اپنے بچوں کو وصیت کي ہے کہ جب بھی وہ یہ سمجھیں کہ ان میں بدلہ لینے کی قوت آگئی سو وہ لے لیں۔' اسی لیے لوگوں کا کہنا ہے کہ بدلے لینے کی اس سخت رسم کی وجہ سے اگر کوئی شخص طالبان کا حصہ بنتا بھی ہے تو کچھ کرنے سے قبل اس کے نتائج کے بارے میں ہزار بار سوچتا ہے"[27]

د پورته بحث څخه مونږ دې نتيجې ته رسيږو چې اتمان خيلو په ازاد حيثيت ژوند دوامدار ساتلے دے هم دغه لامل وو چې دوي چا ته ټيکس يا عائدات تاريخ کښې نه دي ورکړي Refort on Tribes of Dir swat and bajawar including Utmankhel & Sam Ranizai ژباړن ډاکټر خالق زيار دا خاوره دا خلک کښې د کټي وټي يا عائداتو نظام The Revenu system د سر خط لاندي ليکي:

"د کټي وټي نظام په بيلا بيلو ځايونو کښې په بيل ډول دے د ټولني ټوله زمکه په برخو مشتمله ده او د جدي حق په حساب مالکان لري د زمکي د ملکيت په حواله په زمکه هيڅ ټيکس نشته البته د قانون محمدي ص له رويه د پيداوار لسمه حصه د عشر په ډول ورکوي.

عشر په دې ټوله علاقه کښې رواج نه لري ډېرې قبيلې لکه اتمان خيل، د سوات د سيند د چپي غاړي او د کوز او بر سوات اکثري قبيلې او د سمه رانيزۍ خلک هيچا ته عشر "ټيکس" نه ورکوي. بيا هم که چيرې مقامي خان دومره زورور وي چې د عشر اخستلو توان لري نو ځنې خلک عشر ورکوي د سوات د سيند د ښۍ غاړي د دير او سوات قبيلې يا د دير خان ته يا د هغوي مقرر کړو خانانو ته عشر ورکوي . د سوات د سيند د ښي خاړو سواتو قبيلو د دې د پاره چې ځان د محاصل Revenue Collecter د موجوديت نه ځان خلاص کړي د دير نواب سره معاهده کړي ده او د هغې مطابق دوي د خپلو خانانو په لاس نواب ته په کال کښې د عشر په ځائے ټاکلي پيسې ورکوي"[28]

چونکه اتمان خيلو کښې خانان او نوابان نشته کوم چې د مغل او فرنګ پيداوار دي نو د سيمې لارې چارې، هجرے جرګے، د پښتنو د تهذيبي شکل ملک په لاسو

